کوي نو په هغه کې خیر دئ دده لپاره، که له تکلیف او کړاوو سره

مخامخ شي. صبر وربانديې کوي نو په هغه کې يې هم خیر دئ او

دا ډول ( د سراسر خیر او برکت ژوند ) له مؤمن پرته د بل هیچا

لپاره نشي تر لاسه کیدای .

او رسول کریم ﷺ دا زیری هم مسلمان ته ورکړئ چې د هر

خیر او برکت ثمره او نتیجه دوه برابره ده پدې ډول چې که مسلمان

له خوشحالی سره مخامخ شي نو د خدای« ج » شکر په همغې

خوښی کې پر ځای کوي او که له کومې ستونزې سره مخامخ شي

نو وربانديې صبر کوي،

تضاعف او دو چند والي په خوښی کې داسې دی چې له یوې

خوايې هغه خوشالی ور په برخه شوی چی پخپل ذات کې ستر

الٰهی نعمت دی او له بلې خوا د خدای« ج » شکر پکې پر ځای

راوړي چې پدې توګه زيات اجر او ثواب تر لاسه کوي او د خير

تضاعف د هغو په مکارهو ( ربړونو کړاونو ) کې هغه دی چې له

يرې خوا وربانديږ صبر کوي او خدای« ج » د هغه صبر اجر او

ثواب ورته ورکوي او له بل پلوه د خدای« ج » په نصرت له هغو

ستونزو څخه خلاصون مومي او د راحت او سوکاله ژوند غيبرې ته

ور درومي.

بر عکس داسې کسان هم شته چې په کثرت د نعمتونو کې د

کبر او غرور لاره نيسي او په هر ډول جرمونو او ګناهونو لاس

پورې کوي او چې کله له کومې ستونزې سره مخامخ شي نو شور

او فرياد يې ټول ځايونه په سر اخلي يعني دا چې صبر په هغو کې

موجود نه وي ځکه دا ډول کسان له ايمان او صالح عمل څخه

برخمن نه وي چې ددې دوه ډوله ژوندون تر منځ روښانه او څرګند

توپیر موجود دئ او یا داسې ووایو چې مؤمن هر وخت خپل
کنترول او اداره کولای شي نه زیات نعمتونه هغه له لارې باسي
چې د متمردینو او گناهکارانو لاره ونیسي او نه سختي او
مصیبتونه هغه دومره پخپل ځان مشغولولای شي چې حقیقي
احل المشکلات له یاده وباسي او هر چاته خپله خوله په شکوې او
شکایت خلاصه کړي، مؤمن هر وخت خپله مرجع پیژني چې د
ستونزو او سوکالی په حال کې ورته مراجعه وکړي.

بر عکس هغه خلک چې دِ ایمان له ستر نعمت څخه برخه
نلري او تل د خوشگذرانی په فکر کې وي که لږ سکون او راحت
ورته میسر شي نو بیا د دغه راحت د زوال فکر هغوی ځوروي او
یا د دغه راحت د زیاتوالي په فکر سره لکه مچ خپل سر په دواړو
لاسو وهي یعني ډیر داسې کسان لیدل کیږي چې د ښه سوکاله

ژوند سره سره بیا هم زیات ځوریږي او خپل خوب او آرام یې له لاسه ورکړی وي او د خوب راوستو او نشه یې دارو درملو علاج ته یې پنا وروړې وي، او که له ستونزو سره مخامخ شي نو ژړا او فریاد به یې ټول په سر واخلي ځکه پدې ډول خلکو کې د صبر ماده لا درکه شوې وي البته دا هغه څه ندي چې مونږ یې وایو یا یې لیکو بلکې زمونږ د عصر عیني او ورځنیو تجربو دا ټولې لاالهاندی چې په عالَم کې شته والی لري د نړیوالو په نظر کې یې منعکس کوي .

هر څوک چې یوه اندازه د مؤمنانه او جاهلانه ژوند تر منځ د مقایسې په ډول ځیر شي په ډیرې اسانی سره به ددې دوو ډولو ژوندانه په توپیر پوه شي، اسلام خپل پیروان قناعت ته رابولي او هم ورته دستور ورکوي چې په نعمتونو کې زیاتوالی له هغه ذات

څخه وغواړي چې تاسې یې پیدا کړي یاست او د کائناتو واحد او
لا شریکه مالک او متصرف دئ مؤمن چې کله له ناروغی او
افلاس سره مخامخ شي او یا کومه بله عارضه ورته پیدا شي خپله
رضا وربانديې ښيي ځکه هغه پدې پوهیږي چې هر څه د الله «ج»
له جانبه څخه دي، د مصیبت او تکلیف رسیدو په وخت کې د
مؤمن په څیره باندې عجیبه غوندې وقار ښکاري او په پوره
متانت سره دغه تکلیف زغمي او د شکایت یو لفظ هم په خوله نه
راوړي له هغه ذاته چې له ټولو اوچت او د ټولو ستونزو دِغو ټو
خلاصوونکئ دئ نور یې هیڅ ته هم د امید سترګې نه وي پاتې
همدا په الهی قضا باندې رضایت ده چې د مؤمن زړه ته راحت او
اطمینان وربښي او هغه چې نور یې تکلیف بولي د مؤمن لپاره
راحت او سکون ګرځي خو د هغه چا زړه چې د ایمان له نعمت او

ثروت او لاسونه یې له صالحو اعمالو څخه خالي وي نو که په

ناروغي یا فقر مبتلا شي او یا بعضې دنیایي نعمتونه ورڅخه

واخیستل شي هغوی ډیر ژر په ډیرې بدبختی او شقاوت سره را

پرزي.

وروستئ مثال : کـه داسې شخص چې زړه یې پر ایمان

استواره وي له کوم خوف او ویرې سره مخامخ شي نو نفس یې

مطمئن وي او د خوف او ویرې په حالت کې خپل حواس له لاسه نه

ورکوي بلکې په همغه حالت کې په آرام فکر او اعصابو سره له

هغه خوف او ویرې څخه د خلاصون لاره سنجوي تر څو د حل ډیره

ښه لاره انتخاب او له هغه ویرونکی بلا څخه ځان وژغوري.

خو د مؤمن بر خلاف د هغه چا په زړه کې چې راسخ ایمان نه

وي او صالح اعمال ونلري کـه له کومې خوفناکې پیښې سره

مخامخ شي نو زړه یې په ټکان او خپل اعصاب په بشپړه توګه له

لاسه ورکوي، سراسیمه کیږي ، فکر یې تیت او پراګنده کیږي او

په رګ رګ کې یې ډار او خوف ځای نیسي او دومره ویرې او ډار په

راخیستی وي چې نور هیڅ خیر او شر نه پیژني ، دا خویې دننه

حالت وي، باندنی حالت یې داسې وي چې هر شی یې تر نظره

داروونکی او خوفناکه راځي او له هر در او دیواله ډاریږي ، هر

غږ یې په غوږونو کې د خطر زنګ بریښي او په هیڅ باور کولای

نشي او هر څوک ورته قاتل او دښمن ښکاري په هیڅ وجه هم

خپل اعصاب نشي اداره کولای او نه خپل فکر راټولولای شي تر

څو له دغه خوف او ویرې څخه د ژغورنې لار ومومي او دا ډول

حالت په بې ایمانه افرادو باندې د جګړې په وخت کې ډیر ژر ډیره

شدیده حمله کاندي او له زیات غم ، خوف او ویرې سره د جګړې

صحنې ته ورننوځي او له يو عالم خوف او ويرې سره په جنګي عملياتو لاس پورې کوي او له خپل ځانه داسې ليوني حرکات ښيي چې په جنګ کې د نورو د خوف او ويرې سبب ګرځي .

البته په اکتسابي ( تر لاسه شويو ) چارو کې ښه او بد افراد ، مؤمن او کافر يو شان ګډون لري ، هر څوک کولای شي چې له اکتسابي جرأت نه په استفادې سره بعضې کارونه تر سره کړي خو د مؤمن او فاجر تر منځه توپير پدې کې دئ چې مؤمن د سختيو او ستونزو په وړاندې صبر کوي او باور او توکل په الله « ج » کوي چې ددغه پاک احساس په نتيجه کې خوف او ويره هيڅکله هم د مؤمن زړه ته لاره نشي پيدا کولای او هره ستونزه ورته اسانيږي لکه چه الله « ج » فرمايي : { إِن تَكُونُوا تَأْلَمُونَ فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمُونَ ۖ وَتَرْجُونَ مِنَ اللَّهِ مَا لَا يَرْجُونَ } ( النساء : ١٠٤ )

معنیٰ دا چې « که تاسې دردمند کیږئ نو هغوی هم دردمند کیږي لکه څنګه چې تاسې درمند کیږئ ( البته د تاسې او هغوی تر منځ فرق دا دئ چې ) تاسې له الله« ج » څخه امید لرئ کوم چې هغوی یې نلري » .

او مـؤمنینو ته دجګړې په تاوده ډګـر کې د الله « ج » لخـوا مرسته رسیږي او خوف او ویره یې له زړه څخه لرې کوي.

مؤمن چې واوري د خپل پروردګـار له جانبـه: { وَاصْبِرُوْا اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصَّابِرِيْنَ } ( الانفال : ٤٦ )

مـعنیٰ دا چې « صبـر وکـوئ، یقـیناً چه الله « ج » له صبـر کوونکو سره دئ »

نور نو اصلاً مصیبتونه او کړاوونه ورته هیڅ دي، ستړیا او خستګي نه پیژني خوف او ویره له یوه سور کي څخه هم ورته لاره نشي پیدا کولای .

## دوهم :

# هغه بله وسیله چې غمونه او پریشانی له منځه وړي :

هغه بله وسیله چې غمونه او پریشانی له منځه وړي هغه د الله«ج» له مخلوق سره په قول او عمل کې احسان کول دي او هر هغه څه چې معروف دی معمولو ته نیکي او احسان ویل کیږي البته احسان چې له هر چا صادریږي ( که نیک وي که فاجر ) خدای تعالی یې بدیل ورکوي، هوکې د احسان په واسطه غم او پریشانی له منځه ځي خو مؤمن په دغه صفت کې د پوره برخې څښتن وي او گټه یې له نورو څخه زیاته وي . ځکه مؤمن چې احسان کوي نو نیت یې پکې خاص لپاره د خدای«ج» وي او ددې

ان الحمد لله، نحمده، و نستعينه، و نستغفره ونعوذ بالله من شرور انفسنا و سيأت اعمالنا من يهده الله فلا مضل له و من يضلل فلا هادی له، و اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شریک له، و اشهد ان محمداً عبده و رسوله.

يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ٱتَّقُوا ٱللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِۦ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ ( آل عمران : ١٠٢ )

يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُوا رَبَّكُمُ ٱلَّذِى خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَٰحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَآءً وَٱتَّقُوا ٱللَّهَ ٱلَّذِى تَسَآءَلُونَ بِهِۦ وَٱلْأَرْحَامَ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا ( النسآء : ١ )

يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ٱتَّقُوا ٱللَّهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَـٰلَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا ( الاحزاب : ٧٠- ٧١ )

لېـاره احـسـان كـوي تر څو ثـواب ورباندې تـر لاسـه كـړي دغـسـې

شـخص چې پدغه نيت احسان كوي خداى تعالىٰ د ټولو نيكيـو او

ښيگڼو لاره ورته ښانوي او بلا او ربړونه ورڅخه دفع كوي.

خدايتعالىٰ فرمايي : [ لَا خَيْرَ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنْ نَّجْوٰهُمْ إِلَّا مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوْفٍ أَوْ إِصْلَاحٍ بَيْنَ النَّاسِ ۚ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ أَجْراً عَظِيْماً ]۝ ( النساء: ١١٤)

معنیٰ دا چې « په ډيرو سرغوړيو كې خير او بركت نشته مگر د هغه چا لپاره چې د خلكو په منځ كې په صدقه، نيكى او اصلاح باندې امر كوي او څوک چې د اللّٰه« ج » د رضا لپاره دغسې كار كوي نو بيا ژر ده چې هغه ته به عظيم اجر وركړل شي » .

څو ک چې په خير باندې مشغول وي له خير پرته بل څه ورته نه پيښيږي ځكه خير د خير سبب گرځي او شر دفع كوي او هغه

مؤمن چې د ثواب ګټلو په خاطر په خیریه چارو باندې بوخت وي
خدای تعالیٰ به خیر ور پیښبوي او د هغو خیرونو له جملې څخه
یو همدا دئ چې له هر ډول روحي تشویشاتو څخه خلاصون
مومي او هیڅ ډول رنځ او غم ورته نه پیښیږي .

# دریم

# د سکون او اطمینان له وسایلو څخه یوه بله وسیله :

د سکون او اطمینان له وسایلو څخه یوه بله وسیله د نافع علم
او عمل تر سره کول دي په معمولي ډول قلبي او فکري اضطراب
له هغو علومو او اعمالو څخه سر چینه اخلي چې له سلیم فطرت
سره سازګاري ونلري او د هغه علاج یوازې په ښو او نیکو علومو
او اعمالو باندې کیدای شي ، مسلمان چې په هره اندازه غمګین

او پریشانه وي کله چې یې نیکو اعمالو ته مخه کړه سکون او

قلبي راحت ورته پیدا کیږي. دا هم کیدای شي چې دا ډول سرور او

خوشالي له مسلمان پرته نور چاته هم حاصله شي خو د مسلمان

نشاط او خوشالي د هغه له ایمان اخلاص او خلوص نیت څخه

سرچینه اخلي، که چا ته تعلیم ورکوي پکې دِ خدای «ج» له رضا

پرته بل هدف نه لري او که د خیر بل کوم عمل تر سره کوي هم

هدف یې د خدای تعالیٰ رضا او د هغه اطاعت وي او په ټولو

چارو کې له الله «ج» څخه د خیر او استعانت غوښتنه کوي او له

هر شر او بدي څخه له الله «ج» نه پناه غواړي . د همدې دلایلو له

مخې د دغسې نیکو اعمالو تر سره کول د مسلمان د غم او

پریشانی په له منځه وړلو کې اغیزمن رول ادا کولای شي، او هر

کله چې انسان ته کومه اندیښنه پیدا کیږي او یا د زړه په ناروغي

اخته کیږي دلیل یې په انسان کې د ایمان او دنیت د خلوص نښتوالی دئ او یو شمیر همداسې کسان چې په اندیښنو، پریشاني او ډول ډول ناروغیو اخته وو ددې ډول کسانو درمل او علاج پدې شوی چې د پریشانی اسباب یې هیر کړي او په یوې دندې باندې مشغول شوي وي .

لهٰذا هر مسلمان ته ښایي چې په یوې دندې باندې مشغولتیا ولري چې زړه یې ورباندې اشنایي او رغبت ولري او که په زړه داسې بدلون رامنځته شو چې انسان د خیر کار ته وهڅوي باید پوه شي چې الله«ج » یې د خیر اراده کړیده .

## څلورم : د اندیښنې د رفع کولو او دفع کولو بله وسیله :

هغه بله وسیله چې اندیښنه دفع او رفع کولای شي هغه دا ده



چې د ورځنیو چارو په تر سره کولو کې خپل ټول توان او طاقت په

کار واچوي ( ورځنی چارې په بشپړ اطمینان سره په همغې ورځې

باید تر سره شي او د نن ورځې کار سبا ته ونه سپارل شي) . د

راتلونکی په باب له اندیښنې او د تیر شوی په باب له غم څخه

باید په کلکه ډډه وشي همدا وجه ده چې رسول اکرم ﷺ له غم او

اندیښنې څخه له خدای« ج » څخه پناه غوښتې ده .

غم اکثراً په هغو چارو کې انسان ته پیښیږي چې پخوا تر سره

شوی وي او را گرځیدل یې امکان ونلري، او اندیښنه په هغو کارو

کې انسان ته پیښیږي چې د راتلو په باب یې ور څخه ډار ولري،

همدا وجه ده چې انسان د حاضر وخت په فکر کې وي او خپلې

ټولې هڅې د نن ورځې د چارو د اصلاح په خاطر په کار اچوي.

اسلام مسلمان ته ورښیي چې له خپل تیر عمل څخه عبرت

واخله، او په حال کې عمل وکړه او د راتلونکي لپاره دې داسې بنسټ کېږده چې ډېره ښه ودانۍ ورباندې جوړه کړای شې همدا د ژوندانه طریقه ده چې ټول دردونه او مصیبتونه له مسلمان څخه لیرې کوي او هم رسول کریمﷺ مسلمانانو ته د ستور ورکړئ چې د ژوندانه په جوړولو کې د دعا له وسیلې څخه کار واخلی ځکه دعا د استعانت غوښتنه او د خیر طمع لرل له اللّٰه وحده لا شریکه څخه دی، دا چې دعا قبلیږي او که نه دا پخپله بېل بحث دی خو پدې ځای کې یوازې دومره باید ووایو چې دعا له عمل سره تړلې ده، خیر له اللّٰه«ج» څخه غواړئ او له شره څخه الله تعالیٰ ته پناه ورورئ او هم له الله«ج» څخه د دنیا او آخرت د خیر او فلاح غوښتنه کوئ.

او رسول کریمﷺ خپل امتیان له الله«ج» څخه د استعانت په

غوښتلو باندې تحریص کړی دي لکه څنګه چې فرمايي : { و

احرص على ما ينفعک و استعن بالله و لا تعجز، و اذا اصابک

شئ فلا تقل لو أنی فعلت كذا كان كذا و كذا ، و لكن قل قدر الله و

ما شاء فعل فان لو تفتح عمل الشيطان) (رواه مسلم) .

یعني : « پر هغه څه چې درته ګټه رسوي وربانديې حريص

اوسه او استعانت له الله« ج » څخه وغواړه ، او عاجز او نا-

امیده مه کیږه او که له کومې ستونزې سره مخامخ شوې داسې

مه وایه که مې داسې کړي وای داسې به شوي وای بلکه داسې

ووایه هر څه چې الله مقرر کړي وو هماغسې وشوو ځکه چې اګر

او مګر د شیطان دروازې خلاصوي » .

پدې حدیث کې رسول الله ﷺ د خدای تعالٰی بندګان د خیر

چارو ته تحریصوي، په هرحالت کې چې وي او هم يې له اللّٰه« ج »

څخه د استعانت په غوښتلو باندې ورته امر کړئ او لدې څخه يې

منع کړی دی چې عجز، ناتواني او نا اميدي ته تسليم شي، هغه

چې تيـر شـول تيـر شـول او په اوس وخت کې کـه کـوم مـشکل را

منځته کيږي هغه دې الهٰی تقدير وګڼي او په مخ دې ولاړ شي د

پورتني حديث د محتوياتو له پام کې نيولو سره کولای شو ټولې

چارې په دوو برخو وويشو :

لومړی دا چې انسـان په هڅو او کـوشش مکلف دئ تر څو د

خير د چارو د تر لاسه کولو لپاره له هيڅ ممکنې وسيلې څخه ډار

ونکړي هيڅکله هم د ستړيا او کسالت احساس ونکړي او د خپل

مقصد د تر لاسه کولو لپاره په لاره کې مايوس نشي پرله پسې دې

هڅې وکړي او له خپل حقيقي معبود څخه دې مرسته وغواړي.

دوهم هغه چارې چې د انسان له وسې پورته وي نشي کولای

چې پخپل عقل فکر او پخپلو ورسره وسایلو باندې هغه تر لاسه

کړي، کله چې انسان پدې پوه شي چې دا ډول چارې یې تر وسې

پورته دي په اطمینان سره کیني او هیڅ اندیښنه وربادنې نه کوي

بلکې په هغه څه چې صورت نیسي وربادنې راضي وي کله چې

انسان د دې ډول چارو په اړوند دا ډول موقف اختیار کړي بې شکه

ورته هیڅ غم او اندیښنه نه پیدا کیږي بلکې خوښي او خوشالي به

یې په برخه وي .

## پنځم

## هغه لویه وسیله چې انسان ته داډ وربښي :

هغه ډیره لویه وسیله چه انسان ته ډاډ ورکوي او سینه یې

وربادنې خلاصیږي د الله تعالی ذکر دئ، ذکر د سینې په

خلاصیدو او د زړه په اطمینان کې حیرانوونکی اغیزه لري او

خدایتعالیٰ چې د هر ډول اندیښنو او غمونو دله منځه وړلو او

زړونو ته د ډاډ او اطمینان د وربښلو یوازنۍ اغیزمنه لویه وسیله په

نښه کړې ده هغه هماغه د اللّٰه «ج» ذکر دئ لکه څنګه چې

فرمایي : { اَلَا بِذِکۡرِ اللّٰهِ تَطۡمَئِنُّ الۡقُلُوۡبُ } ( الرعد : ۲۸ )

معنیٰ دا چې : « آګاه ووسی چې د خدای تعالیٰ په ذکر باندې

زړونو ته ډاډینه پیدا کیږي »

## شپږم

## ظاهري او باطني نعمتونه :

همدا ډول هغه ظاهري او باطني نعمتونه چې اللّٰه «ج» د خپل

مرحمت له مخې انسان ته ورکړي له هغو باید یادونه وشي ، هغه

وخت چې انسان الٰهی نعمتونه وپیژندل او له هغو څخه یې د الله

# سریزه

الحمد لله رب العالمین و العاقبة للمتقین، والصلاة والسلام

علی سیدالآنبیاء والمرسلین و علی اله و صحبه اجمعین .

امّا بعد :

هر څوک چې غواړي په ډاډمن او آرام زړه، خوشاله او له هر

ډول رنځ او درد پرته خپل ژوند پر مخ بوزي نو ډاډمن ژوند له

تعالیٰ د شکر او سپاس په عنوان یادونه وکړه تول رنځونه پخپله

پو پناه کیږي .

همدارنگه د الله تعالیٰ د نعمتونو په مقابل کې د شکر پر

ځای کول د مسلمان درجې او مرتبې اوچتوي، که چیرې یو انسان

په یوه سخت ازمیښت کې واقع شي نو چه په همغه سخت وخت

کې دغه درد او کړاو د الله تعالیٰ له بې شمیره نعمتونو سره پرتله

کړي نو د الله د نعمتونو او ددغه مشکل تر منځ چې دغه انسان

وربانديې اخته شوی هیڅ تناسب نشي لیدل کیدای یعني د الله-

تعالیٰ دغه نعمتونه په څو چنده پر دغه مشکل باندې زیات وي

چې که دغه انسان چې پدغه مشکل باندې اخته شوی بیا هم د

صبر او حوصلې لمن له لاسه ورنکړي او د خدای «ج» رضا ته

تسلیم شي نو هماغه مشکل او مصیبت به هم ورته نعمت ثابت

شي ځکه چې پدې باندې ثواب تر لاسه کولای شي او ګناهونه یې

پکې توئیږي او په پایله کې د یوه ښه حالت انتظار باسي.

ځکه پدې هکله الله«ج» فرمایي : ﴿إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا﴾

(الشرح: ٦)

معنیٰ دا چې : « یقیناً چه هره سختي له ځان سره اساني

لري ».

## اووم :

## د زړونو د اطمینان بل اساسي عامل :

هغه بل اساسي عامل چې زړونو ته داډ وربښي هغه دا ده

چې انسان پخپل ژوند کې له خپل ځانه په ښکته خلکو نظروکړي

نه له ځانه پورته خلکو باندې. رسول کریم ﷺ پدې برخه کې

داسې فرمایي : ( انظروا الی من هو اسفل منکم ولا تنظروا الی

من هو فوقكم فانه اجدر ان لا تزدروا نعمة الله عليكم) (رواه البخاري و مسلم)

يعني : « وگورئ هغو کسانو ته چې له تاسو ټيټ دي او مه گورئ هغو کسانو ته چې له تاسو پورته دي او دا ډول تگلاره ډيره ښه ده پدې خاطر چې د الله« ج » نعمتونه چې تاسې ته درکړ شوي دي هغه حقير ونه شميرئ » که څوک دغه تعامل پخپل ژوند کې رعايت کړي و به گوري چې هغه نسبت ډيرو خلکو ته آرامه او سوکاله ژوند تيروي نو له همدې څايه ده چې غمونه او پريشانی به يې ليرې شي او په خوښی او خوشالی کې به يې زياتوالی راشي او د خدای تعالیٰ شکر ته به وصل شي.

که مسلمان په ظاهري او باطني نعمتونو باندې چې مراد ورڅخه دين او دنيا ده سوچ او فکر وکړي نو په ورکړو راکړو کې

به خپل پروردګار ته تولو لوړ پیدا کړي کوم چې دی فکر وربانديې

کاندي ځکه خدای تعالیٰ ډیرې زیاتې ښیګنې او نیکې انسان ته

وربښلي او زیاتې بدی یې ورڅخه دفع کړي دي او پدې کې هیڅ

شک نشته چې دا ډول تفکر به د انسان زیات رنځونه له منځه

یوسي او له خوښی او خوشحالي سره به مخ شي.

## اتم

## مسلمان باید تل هڅه وکړي:

مسلمان باید تل هڅه وکړي چې د خیر اسباب برابر کړي او

د شر او فساد له اسبابو څخه ځان وژغوري، که انسان د خیر د

موجباتو او وسایلو په برابرولو کې هڅه وکړي ډیرې ستونزې به

یې حل شي، انسان باید پخوانی ربړې او سختي هیرې کړي او نه

ښایي چې د خپلې راتلونکی په باب ویره ولري چې مبادا له فقر او

لوړې سره به لاس او ګریوان شي او یا به یې ډول ډول ستونزې له

لمنې ونیسي بلکې مسلمان تل باید د خپلو حالاتو دِ اصلاح په

فکر کې ووسی تر څو داسې اعمال تر سره کړي چې د الله تعالیٰ

دِ رضا سبب وګرځي او که انسان د خپل نا معلومه مستقبل په

رابطه اندیښمن وي او هره شیبه خپله راتلونکی د خپل ځان لپاره

خطر بولي دا ډول فکر په حقیقت کې حماقت او لیونتوب دئ. ډیر

ښه مسلمان هغه دی چې توکل په خدای «ج» ولري او ددغه توکل

په رڼا کې ثابت ګامونه مخ په وړاندې اوچت کړي او هره شیبه او

لمحه چې ورپسې راځي باید په خیر او حسناتو باندې ورته هر-

کلی ووایي که انسان دا ډول طریقه د خپلی راتلونکي په باب غوره

کړي یقیناً چې د زړه اطمینان ورته حاصلیږي او له ټولو اندیښنو

څخه به په امن کې پاتې شي.

## نهم:

## د بنې راتلونکې لپاره :

د ښې راتلونکې لپاره له هغې دعا څخه باید استفاده وشي چې رسول کریم ﷺ فرمايلي دي : ( اللهم أصلح لی دینی الذی هو عصمة أمری و أصلح لی دنیای التی فیها معاشی ، و أصلح لی آخرتی التی الیها معادی و اجعل الحیاة زیادة لی فی کل خیر ، والموت راحة لی من کل شر ) ( رواه مسلم )

يعني : « اې پروردګاره! اصلاح کړه ماته هغه زما دين چې هغه زما د کار عصمت دئ او اصلاح کړه مالره هغه زما دنيا چې زما ژوند پکې دئ او هغه زما آخرت اصلاح کړه چې زما ورتګ دئ ورته ، او د هر خير په کار کې زيات ژوند را په برخه کړه او له هر شر څخه مرګ راته راحت وګرځوه .همدارنګه دغه مسنونه

دعــا د زړونو آرام را منځــتــه کــوي : ( اللهم رحــمــتک ارجــوا فــلا تکلنی الی نفسی طرفة عین و اصلح لی شأني کله، لا اله الا انت )

( رواه ابو داؤد )

مـعنیٰ دا چې : « اې پرورد گاره! ستا دِ رحـمت هیله کوم نو مـا خـپل نفس ته مـه ور حـواله کـوه د یوې سـترگې رپ لپـاره، او زمـا ټول حــالتــونه را جــوړ کــړه، ســتــا له اقــدس ذات څخــه پرتـه بل هیـڅوک لایق د عـبادت نشتـه » . هغه وخت چې یو مـسلمان دغـه دعــا وکړي او د خـضـوع ، خشـوع او د زړه په حـضـور او د نـیت په خلوص سـره یې د خـپل پروردگــار حــضــور تـه عـرض کـړي لوی خدای « ج » هغـه شـیان چې پدې دعـا کې ذکر شـوي دي ټول ور ته محقق گرځوي او د مسلمان پریشانی لیرې کیږي .

## لسم

# هغه بله وسیله چې د زړونو د اطمینان سبب ګرځي

هغه بله وسیله چې د زړونو د اطمینان سبب ګرځي هغه داده چې کـه څوک په پریشـانیو باندې اختـه شو هغـه باید لږ او اسـانه وګڼي او هغـه شیـان دې تصور کړي چې لـه هغو څخه یې مـشکل زیات او سـخت وي کـه څوک داوړ کـار وکـاندي انشـاء الله چې له غـمونو څخـه بـه خـلاص شي. او هم باید هغـو کـارو تـه خپل پام واړوي چې زړه ورپلو د خیـر مـیلان ولري . « البـتـه بعـضې داسې شیان شته چې د انسـان نفس په هیڅ وجه د هغـو پریښولو ته غـاړه نه ږدي ځکه هغـه شیـان لـه مـرغـو باتو څخـه وي او نفس په هغـه لوري زیات مـیلان لري خـو په عـین حـال کې همـدا شیـان داسې

اسباب دی چې انسان له غمونو سره مخامخ کوي نو بیا د دغو شیانو او د دغو چارو د ترک کولو لپاره پر له پسې مجاهده او مبارزه ضروري ده تر څو نفس ورځخه واړولای شي او د دې ډول کار په تر سره کولو کې باید له الله«ج» ځخه استعانت وغوښتل شي او د هغو چارو په ترک کولو کې باید تأخیر و نشي ځکه هر څومره چې پدې برخه کې ځنډ کیږي د غمونو څپې د انسان په زړه کې نورې هم طوفاني کیږي چې په لازمه مجاهده باندې انشاءالله انسان وریاندې غلبه موندلای شي او د خوشالی او سینو د فراخوالي پایلې به له ځانه سره ولري) .

انسان باید د ستونزو او مصیبتونو په مقابل کې ځان عیار کړي او چه کله له هری ستونزې ( نیستی او ناروغی) سره مخامخ شي نو باید خپل صبر او حوصله له لاسه ورنکړي او په

الله «ج» باندې په توکل سره د هغو ستونزو مقابله وکړي .

او دا هم باید ووایو چې دا یوازې د خولې تشې خبرې ندي بلکې دا په ډیرو ځایو کې تجربه شوئ عمل دئ چې د سر په سترګو لیدل شوی دی.

## یوولسم

## د غمونو د علاج لویه او اغیزمنه وسیله

د غمونو د علاج لویه او اغیزمنه لاره دا ده چې انسان باید خپل ځان خیالاتو او توهماتو ته ور حواله نکړي ځکه اوهام او واهي خیالونه د انسان عصبي سلسله ګډوډوي او د بني آدم په ذهن کې راز راز حیرانوونکي احساسات را پاروي، هغه انسان چې خرافي او هامو ته تسلیم شي هغه په ژوند کې نور د خوښی مخ هم نشی لیدای بلکې تل به د خپل راتلونکي په باب په وسوسو

ډاډمن زړه سره تړاو لري او هر چا ته چې د زړه ډاډ پیدا شونو ژوند یې هم له هر ډول دردونو کړاوونو او مصیبتونو څخه پاک کیږي او هم دیني طبعي او عملي وسایل بیا داسې ورته میسریږي چې خاطر یې له هر لحاظه په راحت او په امن ګرځي .

البته داډول ژوند چې په هر لحظا ډاډمن وي له کامل مؤمن پرته د بل چا نصیب نشي ګرځیدلای .

له مؤمنینو پرته د نورو خلکو ژوند که له یوې خوا ډاډ من وي نو نورې خواوې یې غمونو ، وسوسو او هیبتونو نیولې وي که څه هم د هغوی پوهان هڅه کوي چې غمونه له خپلې تولنې لرې وساتي خو دا هلې ځلې د اسلام له مبین دین پرته کله لاس ته راوړل کیدای شي.

زه به کوښښ وکړم پخپلې دغې رساله کې هغه اسباب او

او بدگمانیو باندې سروي، له ناروغیو به ډارېږي له فقر او

نیستی څخه به په ویره کې وي، له دښمنیو او خصومتونو څخه به

اندیښمن وي، تل به قهرجن او غضبناکه وي، له خپلو او پردیو

څخه به بیزاره او دِ شک او تردید په سترګه به ورته ګوري هیڅ

ډول خوشبیني او نیک ګمان به د هیچا په نسبت نه لري، خپل ټول

ژوند به د غم، درد او کړاو په آینه کې ویني، د ذهن په پانو کې یې

داسې نقشې ترسیمېږي چې له ډار او ویرې څخه سر په زنګنو

پاتې وي تر څو بالآخره کار یې دې حد ته ورسیږي چې د لیونتوب

په مرض اخته شي چې بیا په دارالمجانین کې واچول شي او یا یې

په خیابونونو او بیابانونو باندې سر شي.

نو بیا د دغې وژونکې ناروغی علاج همدا دئ چې له هسې

وهمي خیالاتو څخه ډډه وکړي او د حقیقت په سترګو هر شي ته

نظر وکړي چې همدا يې د علاج زيا ته ګټوره اغېزمنه او مجربه لار ده.

# دوولسم

## پر خدای باندې د زړه باور :

هغه وخت چې زړه پر الله «ج» باندې باور وکړي او توکل
خپله دنده وګرځوي او له او هامو څخه ځان ليرې وساتي او له
واهي او بې بنسټه خيالاتو څخه په امن کې پاتې شي او اطمينان
او اعتماد پکې پيدا شو او د خدايتعالیٰ فضل ته اميدواره شي په
هغه وخت کې به ټول غمونه او انديښنې ور څخه کډه وکړي او د
زړه او بدن ډيرې ناروغی او ناکراري به يې له منځه ولاړې شي ،
زړه به يې قوت ومومي او سينه به يې خلاصه شي او داسې خوښي
او راحت به دې ډول انسان ته ور په برخه شي چې په الفاظو کې

يې تعبير نشي كيداى ، دا ډول برياليتوب هغه وخت انسان ته ور

په برخه كيږي چې توكل په خداى« ج » وكړي ، اللّٰه تعالىٰ فرمايي:

{ وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ حَسْبُهُ} ( الطلاق : ۳ )

معنىٰ دا چې : « او څوک چې پر الله توكل وكړي پس هغه

جل جلاله كافي ده دغه شخص لره » . يعني له هغو ټولو ديني او

دنيوي انديښنو څخه چې دئ ځوروي الله« ج » ورته كافي او

بسنده دئ. څوک چې پر الله « ج » باندې توكل ولري زړه يې

پياوړى وي اوهام او وسوسې ورته لاره نشي پيدا كولاى او د

روزګار پيښې او لوړې ژورې هغه سست او بې ارادې كولاى

نشي ځكه متوكل على الله« ج » شخص پوهيږي چې سستي او

بې اراده ګى د ميړو شيوه نده او هم متوكل على الله« ج » پوهيږي

هر څوک چې پر الله« ج » باندې توكل وكړئ د چارو متكفل يې

اللّٰه تعالیٰ وي چې د ټولو ستونزو په مقابل کې ورته کافي او بسنده دئ او زړه يې هم ورباندې ډاډه وي روحي او قلبي اضطراب يې ليرې کيږي، سختي يې په اساني بدليږي ، غم يې په خوشالي او ډار يې په امن بدليږي. له لوی خدای«ج » څخه د دنيا او آخرت په چارو کې عافيت غواړو او هم دې خدای تعالیٰ مونږ ته د زړه قوت راکړي او پخپل بشپړ توکل باندې مو دې ثابت وساتي په هغه توکل باندې چې د الٰهی عناياتو د تکفل سبب گرځي اهل ته يې او له هر شر اؤ ضرر څخه مو دې وساتي .

## ديارلسم :

## مؤمن سړي ته نه ښايي چې له مؤمنې ښځې څخه کرکه وکړي :

پدې حديث شريف کې دوه ستري گټې شته چې رسول اللّه ﷺ

فرمايي : ( لا يفرك مؤمن مومنة ، ان كره منها خلقا رضى منها خلقا آخر ) (رواه مسلم)

معنیٰ دا چې : « مؤمن سړي ته نه ښايي چې له مؤمنې ښځې څخه کرکه وکړي که يې يو عادت خوښ نه شو نو بل خاصيت خو به يې د هغه رضايت حاصل کړي » .

له هغو دوو ګڼو څخه يوه دا ده چې د ښځې او ميړه ګډ ژوند وربانديې کلکيږي او دغه مبارک حديث د انسان پام ديته را اړوي چې خامخا په انسان کې ښه خويونه هم شته او نقصان هم شته نو پدې توګه مسلمان ديته متوجه کوي چې نظر يې تل د نورو په ښو خويونو وي نه په عيبونو نقصونو ، هغه وخت چې مسلمان دا ډول لاره ځانته غوره کړي حتماً يې په زړه کې مينه ځای نيسي بِالخصوص هغه وخت چې له ښو خويونو څخه يادونه وکړي ،

هغه ښځه چې خپل ښه خویونه او بیا د خپل میړه له خولې واوري کوښښ کوي چې خپل نقایص هم اصلاح کړي تر څو یې د ښیګڼو شمیر زیات شي پدې توګه د کورنۍ ټولې چارې د یوې ښې او صحیح لارې په لور حرکت کوي، مکدره فضا معطره ګرځي د ښځې او میړه تر منځ لیده کاته خبرې او صمیمیتونه زیاتیږي او معقول ژوند ځانته غوره کوي. دوهمه ګټه یې دا ده چې د ښځې د ښو خویونو په پام کې نیولو سره د حقوقو او واجباتو تر سره کول په صحیح توګه صورت نیسي او د زوجیت لړۍ نوره هم ور پسې کلکیږي او یو د بل وجود هر یو د خپل ځان لپاره راحت او ثواب ګڼي.

او بر خلاف که یوازې د ښځې نقایصو ته نظر وکړای شي او هر وخت ورته بد وویل شي طعنه ورکړ شي یقیناً چې په هغه

صورت کې به د کور فضا کړکیچنه شي او په هغه کورنۍ کې به

اصلاً نور سکون او راحت وجود ونلري او د حقوقو او واجباتو په

تر سره کولو کې به کمښت را منځته شي که داسې وي نو دا ډول

انسان به پداسې کورنۍ کې په دنیا کې ماخوذ او په آخرت کې

معتوب شي.

ډیر داسې کسان هم شته چې په لویو چارو کې د عجیب عزم

او خپلواکۍ ښتنان وي خو په ډیرو بسیطو او ساده کارو کې خوا۔

بدي او پریشانه کیږي ددې ډول خوا بدي دلیل دا دئ چې دا ډول

اشخاص اصلاً وړو چارو ته هیڅ اعتنا نه کوي او په هر اړخیزه توګه

یې خپل ځان یوازې لویو چارو ته وقف کړی وي چې ... دوی ځخه

باید هیڅ وخت بې صبري او بې ثباتي سر ... ونه وهي خو پوه او

هوښیار هغه څوک دئ چې تولو وړو او لویو چارو ته په یوه ډول

توجه ولري.

خدای تعالیٰ دې له هر چا سره د خیر په چارو کې مرسته او مرحمت وکړي او خدای تعالیٰ دې هیڅ مسلمان خپل نفس ته نه ور حواله کوي [1] هغه مسلمان چې لویو ورو چارو ته نظر کوي هیڅکله هم نه خوا بدی کیږي او تل په راحت او سکون سره خپل ژوند پر مخ بیايي.

---

(۱) له حضرت انس نه روایت شوی دی چی رسول کریم «ص» حضرت فاطمی «رض» ته وفرمایل:
(ما یمنعک ان تسمعی ما اوصیک به ان تقولی اذا اصبحت و اذا امسیت: یا حی یا قیوم برحمتک استغیث اصلح لی شانی کله، و لا تکلنی الی نفسی طرفة عین أبدا) (رواه بیهقی)
یعني: «څه شی تا منع کوی چی واوری هغه څه چی زه درته توصیه کوم؟ دا چې سحر ماښام ووایی: ای تل ژوندیه (دکائناتو) تدبیر کوونکیه ستا رحمت ته فریاد کوم، اصلاح کړه زما ټولی چارې او ما مه حواله کوه خپل نفس ته په اندازه د یوه رپ د سترگې هم».

# څوارلسم :

## زيرك او هوښيار پوه :

هوښيار او پوه پدې پوهيږي چې سم ژوند هغه دئ چې سعادت او اطمينان پکې نغښتى وي، او ژوند يقيناً چې لنډ دئ نو نه ښايي چې په غم او کړاو کې تير شي او که د واقعي ډاډمن ژوند لپاره کوښښ نکوي يقيناً چې دغه شخص اصلاً د ژوند په مفهوم ندى پوه شوى بلکى دا ژوند يې د څو ورځو لپاره يوازې خوب او خوراک تصور کړى دئ خو مسلمان پخپله خپل ژوند د بې معنىٰ بدلونونو او اضطراباتو په وجه نه بربادوي بلکې هر وخت هڅه کوي چې سکون او اطمينان يې په زړه کې ځاى ونيسي او په بشپړ سکون او اطمينان سره د خپل خداى عبادت وکړي.

هوکې! پوه او هوښيار مسلمان د ژوند رمزونو او حقايقو ته

هڅه کوي تر څو په ژوند کې له نغښتو ګټو څخه استفاده وکړي او هیڅکله هم خپل ځان ته اجازه نه ورکوي چې خپل وخت په واهیاتو، تخیلاتو او اضطراباتو باندې له لاسه ورکړي.

## پنځلسم

## د قلبي اطمینان موجبات :

د قلبي اطمینان له موجباتو څخه دا هم ده چې که یو مسلمان پدې پوه شي چې له مکارهې سره مخامخ کیدونکی دئ او یا له هغې څخه ویره ولري نو بیا باید هغه الله تعالیٰ له نورو نعمتونو سره پرتله کړي په پایله کې به دې نتیجې ته ورسیږي چې نعمتونه یې له اضطراباتو څخه ډیر دي نو بیا به پدې ډاډه شي چې له هغه تکلیف او ستونزې سره چې دی ورسره مخامخ شوی چندان پریشانه نشي.

وسایل په نښه کړم چې د هغو د لاسته راوړلو په خاطر له هر درد

او غم پرته د یوه [illegible] آرام ژوند لپاره هر څوک هلې ځلې کوي.

او هر چا چې دغه اسباب او وسایل تر لاسه کړل یقیناً چې له

هر حیثه به یې آرام او راحت ژوند په برخه شي او هر څوک چې ور

څخه محروم او بې نصیبه پاتې شو نو له غم او کړاوه ډک ژوند

سره به مخامخ شي. او الله «ج» دِ هر خیر توفیق ورکوونکی او د

هر شر دفع کوونکی دی.

په همدې ډول مسلمان باید د اضرارو په احتمالاتو پسې لاړ نشي بلکې د چارو له یقین او عینیت څخه پیروي وکړي ځکه احتمالات تل ضعیف واقع کیږي .

یو انسان که هر څومره لږ لید هم ولري احتمالات یې د کوم کار لپاره حجت نشي کیدای نو مسلمان ته نه ښایي چې د احتمالي اضرارو له وړاندې څخه له مخکې نه خپل ځان په پریشانیو او غمونو باندې اخته کړي او فرضاً که د احتمال مطابق بیا هم له کوم تکلیف سره مخامخ هم شي هغه باید په خپل ایماني قوت سره له منځه یوسي او د هغه په رفع کولو کې سستي او لټي ونکړي.

# شپاړسم

## گټوري چارې :

له گټورو چارو څخه یوه هم دا ده چې مسلمان باید د بل چا له ناوړ خبرو څخه ونه ځوریږي ځکه نا مطلوب او ناوړه الفاظ او اقوال چا ته ضرر نشي رسولای بلکې ټول اضرار یې خپله ویونکي ته یې متوجه کیږي مگر خو هغه وخت دغه ضرر ورسیدای شي چې د ویونکي په ناوړه او نامطلوبو الفاظو ځان ورسره شریک کړي او د ویونکي په مقابل کې بالمثله الفاظ استعمال کړي، نو **مسلمان ته نه ښایي چې خپل قیمتي وخت د دغسې واهیاتو په اوریدو باندې ضایع کړي او یا خپل ځان ته اضافگي اندیښنې پیدا کړي.**

## وولسم:

## پدې هم باید مسلمان پوه شي

او پدې هم باید مسلمان پوه شي چې ژوند یې دده د خپلو افکارو تابع دئ که چیرې له نیکو افکارو څخه تفکر وکړي یقیناً چې د دنیا او آخرت سعادت به تر لاسه کړي که نه نو د دارینو له خسران سره به مخامخ شي.

## اتلسم

## د زړه د سکون او اطمینان عوامل :

د زړه د سکون او اطمینان له عواملو څخه یو هم دا دئ چې د خپلې نیکۍ په مقابل کې له مقابل لوري څخه د منني او سپاس غوښتونکي مه اوسئ مګر وئي غواړئ له هغه اقدس الهی ذات څخه چې نیکی دې قبوله کړي که دا نیکي مو له هغه چا سره

کړی وي چې پر تاسې حق لرئ او که لدې پرته وي .

پدې پوه شه اې مسلمان وروره! چې ستا معامله له الله«ج »

سره ده نه له کوم انسان سره ، خپل عظیم اجر نه ښايي چې په

ناچیزه او اندک شي باندې تبادله کیږي ، خدای تعالیٰ پدې برخه

کې مسلمان ته داسې دستور ورکوي چې باید له هر چا سره چې

نیکي کوئ ورته ووایئ:

{اِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللّٰهِ لَا نُرِيْدُ مِنْكُمْ جَزَاءً وَّلَا شُكُوْرًا}○

(الدهر: ۹)

یعني : « لدې پرته بل څه ندي چې مونږ خورو پر تاسو باندې

د خدای« ج » د رضا د حاصلولو په خاطر ، هیڅ نه غواړو له تاسو

څخه څه شی معاوضه او یا مننه » .

او دا تاکید دئ د هغو خلکو په برخه کې چې هغو ته څه شئ

ورکوی که دا مو اهل او عیال وي، یا مونور خپلوان او خپلوان او یا نور خلک.

مسلمان باید کوښښ وکړي چې خپل عمل خالصتاً لله تر سره کړي ځکه الله«ج» پر حقه اجر ورکوونکی دی او بل هیڅوک هیڅ شی له هیچا سره نشي کولای .

او هر هغه څه چې زمونږ په دنیا کې صورت نیسي له یوې شبحې[1] پرته څه ندي . نو نه ښایي چې په یوې شبحې باندې زړه وتړو او له اصل څخه غافل شو که څوک پدې حقیقت پوه شول واقعاً چې د ژوند مفهوم یې تر لاسه کړئ او له بې گټو او بې معنیٰ غمونو څخه یې ځان ژغورلی او که نه نو له پریشانی پرته بله گټه به تر لاسه نکړي .

شبحه
(۱) : کالبد- هغه توروالي چې له لیرې په نظر رسیږي.

## نولسم

## گټور کارونه :

ګټورو کارونو باندې باید د هر مسلمان ښه نظر وي او د داسې اعمالو په پیژندنه کې باید مسلمان کوښښ وکړي او مسلمان ته نه ښايي چې موذي او ضرر رسوونکو چارو ته متوجه شي ځکه دا ډول اعمال له پریشانی او اندیښنې پرته بله کومه ګټه نه لري بلکې مسلمان باید ګټورې چارې سرته ورسوي تر څو د اطمينان له نعمت او خوشالۍ څخه برخمن شي.

## شلم

## په کار کې د عمل سرعت :

په کارونو کې باید د عمل سرعت تر سره شي او که داسې ونشي چارې یو له بل سره تراکم پيدا کوي او د انسان راتلونکی له

ستونزو سره مخامخ کوي ځکه زیرکي چارې هم د راتلونکي لپاره ذخیره کوي، که هر کار په خپل ځای او خپل وخت کې سر ته ورسیږي نو راتلونکي د انسان استقبال ته را درومي او هیڅکله به هم له اضافي ستونزو سره مخامخ نشي.

بلکې له تیرو چارو څخه به په فارغ فکر سره هغه چارې چې اوس یې په مخکې لرئ په ښه توګه په مخ بوزئ.

## یو ویشتم :

## د خیر په چارو کې فکر کول :

د خیر په چارو کې باید فکروشي چې کوم یو له هغو څخه زیات اهمیت او ارزښت لري چې باید په لومړي قدم کې تر سره شي.

په چارو کې دي چې هرې چارې ته د زړه میلان زیات وو تر





تولو ړومبی يې په تر سره کولو باندې اقدام وکړه ځکه که مهم کار وروسته کيږي ستا د پريشانی سبب گرځي او ددې دول چارو په تر سره کولو کې د نيکو خلکو له مشورو څخه استعانت وغواړه او ددغسې چارو په انتخاب کې زيات فکر وکړه، مشوره کوونکۍ هيڅکله هم نه پښيمانه کيږي، له مشورې او تفکر وروسته چې مو هره خوا غوره کړه د اجراءلپاره ټې تصميم ونيسۍ او پر الله «ج» توکل وکړۍ ځکه چې په الله تعالٰی باندې متوکلين گران دي.

**والحمد لله رب العالمين**

**وصلى الله على سيدنا محمد**

**و على اله و صحبه وسلم.**

**د کتاب له متن څخه:**

هغه وخت چې زړه پر الله «ج» باندې وکړي او توکل خپله دنده وګرځوي او [illegible] اوهامو څخه ځان ليرې وساتي او له واهي او بې بنسټه خيالاتو څخه په امن کې پاتې شي او اطمينان او اعتماد پکې پيدا شو او دخدايتعالی فضل ته اميدواره شي په هغه وخت کې به ټول غمونه او اندېښنې ورڅخه کډه وکړي او د زړه او بدن ډيرې ناروغي او نا کرارې به يې له منځه ولاړې شي .



کتابفروشی کابل

نزد زیارت شاه دوشمشیره، کابل - افغانستان

# تر ټولو اغېزمنې وسيلې او اسباب

لومړۍ:

۱ – هغه اغېزمنې وسيلې او اسباب چې د ښه او ډاډمن ژوند سبب ګرځي:

د ښه او ډاډمن ژوند ډېر ښه او اغېزمن اسباب او وسايل ايمان او صالح عملونه دي لکه څنګه چې الله تعالیٰ فرمايي:

{ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَوٰةً طَيِّبَةً وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَجْرَهُمْ بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ } ( النحل : ۹۷ )

يعني « هغه څوک چې د نيکې عمل سرته ورسوي، که نارينه وي او که ښځه پدې شرط چې مؤمن وي نو برابر به کړو ورته پاک ژوند او مکافات به ورکړو هغوی ته د هغو ښو عملونو په سبب

چې تر سره کړی یې دی » .

په دغه مبارک آیت کې الله «ج» پدې دنیا کې د ښه او پاک ژوند سبب ایمان او صالح عمل ښوودلی دی.

همدارنګه ایمان او نیک عملونه د هغه اصلي مقصد چې هغه دِ آخرت د ورځې نیکبختی او خوشحالي ده هم سبب ګرځي .

ددې ډول ویاړلي او عزتمن ژوند سبب روښانه دی ځکه ایمان هغه اغیزمنه وسیله ده چې که د چا په زړه کې واقعاً ځای ونیسي نو دغه شخص بیا صالح عملونو ته هڅوي . ځکه د انسان ټول غړي د زړه متابعت لري هر کله چې زړه د سالم ایمان په وسیله له هر عیب او ناولتیا څخه پاک شي د انسان د بدن نور غړي پخپله د صالح عملونو لاره نیسي . نیک اخلاق د مسلمان نصیب ګرځي ، د خوښي او خوشالی وسایل انسان ته مخه کاندي او له هر ډول

غم څخه يې ژغوري په پایله کې سالم ایمان، ښایسته عمل او حسنه اخلاق دِانسان په زړه کې د خدای مینه پیدا کوي او له نورو انسانانو سره د دوستی او محبت له لارې مخې ته ځي او بنده شاکر گرځي او پداسې ځایونو کې خپل ځان مصروف ساتي چې له خیر پرته بل څه منځ ته نه راوړي.

هغه انسان چې دغې درجې ته ورسیږي د خپل ایمان اخلاق او اعمالو په ساتنه کې زیات کوښښ کوي او پر پاینبت باندې یې حریص اوسیږی او د برکت تر لاسه کولو ته یې په طمع وي او هم هڅه کوي چې د شاکرینو ثواب تر لاسه کړي یعني د هغه مسلمان چې د عملي اسلام په نتیجه کې یې له هر حیثه آرام او سوکاله ژوند ور په برخه شي له الٰهی شکران او مننې پرته بل کار نکوي او همدا د حقیقي او واقعي ایمان ثمره ده .

او که دا ډول حقیقي مؤمن له مصیبتونو یا نفسي خواهشاتو

سره مامخ شي نو په مقابل کې يې مقاومت ښيي او هیڅکله هم

خپل همت له لاسه نه ورکوي او هیڅکله هم شیطاني وسوسو ته

نه تسلیمیږي او هیڅکله هم دِ اگر مگر په گرداب کې ځان نه

اچوي بلکې له جمیل صبر څخه کار اخلي او د هغو مصایبو او

شدایدو د له منځه وړلو او دفع کولو په خاطر مؤمنانه او

مخلصانه هڅې او هلې ځلې کوي او هغه ټول رنځونه د « ماشاء -

الله فعل » بولي دا ډول هڅې که له یوې خوا د یوه هڅه کوونکي

مؤمن دِ رنځونو په رفع کولو کې مرسته کوي له بلې خوا یو

مجرب شخص ورنه جوړیږي او له ټولو بهتره دا چې پدغسې

ازمیښت باندې په صبر کولو سره د خدای«ج» رضا تر لاسه

کولای شي صبر پدې مانا چې مسلمان له هغو کړاوونو څخه د

خلاصون په خاطر خپلې وروستۍ هڅې پکار اچوي خو د شکايت په عنوان يوه خبره هم په خوله نه اخلي په همدې خاطر الله تعالیٰ د خپل دغسې بنده مرسته کوي او هغه ټول کړاوونه يې په خوښۍ او سوکالۍ بدلوي او هغه اجر او ثواب چه پدې برخه کې دِ الله«ج» لخوا ورته ورکول کيږي . دغه دوه اړخيزه خير چې د مسلمان په برخه کيږي په يوه حديث کې چې امام مسلم پخپل صحيح کې روايت کړی رسول اکرم ﷺ پدې برخه کې داسې فرمايي :

( عجبا لامر المومن ان أمره كله خير ان اصابته سراء شكر فكان خيرا له و اصابته ضراء صبر فكان خيرا له و ليس ذلک لاحد الا للمؤمن )

يعني : حيرانوونکی دي د مؤمن کارونه چې ټول يې خير دی که خوښي او خوشالي ورته رسيږي د خدای«ج» شکر پر ځای

# د ژباړونکي څو خبرې

نحمده و نصلی علیٰ رسوله الکریم و بعد :

پدې کې به شک نه وي چه نن اکثره انسانان په ډول ډول ستونزو کې ښکیل او د یو لړ ناآرامیو سره مخ دي او ټول پدې هڅه کې دي چه څنګه و کولای شي ځانته د خلاصون لاره پیدا او سوکاله ژوند وکړي خو تر کوم حده چه خبره تر اسلامي امت او بیا په خاصه توګه افغاني مسلمانې ټولنې ته راجع ده .

داسې خلک به ډیر لږ وموندل شي چې زړه یې آرام او ماغزه یې په کرار وي دا ځکه چې د ۱۳۵۷ هـ ش کال د غوایي د ۷ نیټې د کفري او کمونستي کودتا نه را پدیخوا ځمونږ مسلمان مجاهد ملت په دې دوو لسیزو کې له بې شمیره لوړو ژورو سره مخ او زیات ځاني او مالي زیانونه یې وګالل چه اکثره یې پردیو

هیوادونو ته مهاجر هم شول چې دغه ستونزې او کړاوونه طبعاً په

انسان باندې منفي او ناوړه اثر کوي او په پای کې ددې جوګه شي

چې یو ډول د ناراحتی بیماری ورته پیدا او په هغه او دغه ډاکتر او

معالج پسې د تداوي او علاج په خاطر ګرځي او بې دریغه دوایانې

خوري. خو داسې نسخه او علاج نشي پیدا کولای چې دده د رنځ

دوا شي او دی پې جوړ شي چې پدغه لړ کې زه هم دِ همدغه لار

لاروی ووم او هغه پدې چه کله په افغانستان د کفر او کمونیزم

تورڅادر خپور شو ما هم دا سه وګنله چې نور کتابونه باید کت

کړم او د نجم المدارس عالي مدرسه چې د جلال آباد د هډې

نومې ځای کې واقع وه پریږدم او د هجرت لاره د جهاد په منظور

غوره کړم هماغه وو چې پیښور ته مهاجر شوم نو پدې فکر او

سوچونو کې شوم چې خدایه کتابونه بلکل په آخره او پای کې رانه

پاتې شول او خپلو خپلوانو نه جدا په پردي وطن کې مسافر او له
یو لوی دهري او کفري قوت سره چې په هغه وخت کې یې ځانته
شکست نا پذیر ویل د مبارزې او مجاهدې په نیت پدې ضعیفه
ځان چې په هغه وخت کې د مهاجرو تعداد فقط څو سوونو ته
رسیده راوتلی یم دا به څنګه شي او څه به کیږي . شپه او ورځ به
مې همدا سوچونه او فکرونه وو، سره لدې چې پاک خدای خو به له
یوې ورځې نه بلې ته خاص دِ ډاډ وسایل را مخې ته کول او د
ملک دِهرې خوا د مجاهدو خلکو قیامونو خو به دا زیرې راکولو
چې خدای به افغانستان آزادوي او دهري حکومت به نسکور او
ختمیږي چې پاک خدای هماغه شان هم وکړل خو دا ځما مسلسل
او په انبار انبار شپه او ورځ سوچونه او وسوسې ددې سبب شول
چې یو لوی عصبي مرض راته جوړ شو نن له هغه ډاکټر او سبا له

بل ډاکتر څخه علاج او له یو عالَم مایوسي سره مخامخ شوی ووم

لنډه دا چه څو څو کلونه سرگردانه او له یوې ورځې نه بلې ته د

رکود او سقوط سره مامخ کیدم د چا خبره چې بد تري وه او بهتري

نه . خو دا چې انسان پخپلې سعی مکلف دی تل به پدې لټه کې

ووم چې څنگه به وکولای شم ځان لدې مهلک مرض څخه

وژغورم او ډاډمن ژوند وکړم چې د لوی خدای په فضل دغه کتاب

د الشیخ عبدالرحمن بن ناصر السعدي چې اوس ستاسې په مخ

کې دی دري ژباړه بې راته گوتو شو چې په یوه ځل مطالعه او

لوستویی له اوږو څخه مې نیمایي بار کم شو هغه چې وایي ړوند

له خدایه څه غواړي وای چې دوه سترگې غواړي ماته هم د علاج په

زړه پورې نسخه لاس ته راغله کوم چې ماته یې د معالجې زیری

په یوه ځل لوستو راکړ نو په تکراري مطالعه مې شروع وکړه چې

په هر ځل مطالعه یې ځما د دغه مهلک مرض ډیر کموالئ راغئ

چې آخر کې دا فکر را پیدا شو چې پدغه په اصطلاح مرض چې

اصلاً مرض ندئ خو په غیر ارادي توگه لکه ځما پشان بې شمیره

نورو هم ترې لا علاجه مرض جوړ کړئ او په علاج کې یې ځما

پشان ستړی ستومانه شوي او نتیجه یې نده ورکړې لازمه مې

وگنله چې د یو لوی ثواب او کار خیر په نیت یې په پښتو ترجمه

کړم، تر څو زمونږ د پښتو ژبې هغه بیماران چې له پښتو ژبې پرته

له نورو ژبو سره آشنایي او بلدیت نه لري ترینه مستفید شي او چه

کله یې ترې گټنه واخیسته بیا یې خپل بل مسلمان وروړ ته چې

پدغه شان په اصطلاح مرض اخته وي ورکړي تر څو هغه هم له

دغې گټې څخه بې برخې پاتې نشي.

دا چه د دغه کتاب لارښوونې به لوستونکي ته خاصې فایدې

ور په برخه کړي يوه بله مجربه نسخه چې هغه ما پخپله پخپل ځان

تجربه کړې او زياته گټه يې کړېده هغه به زه پرې اضافه کړم

سورهٔ فاتحه چه هسې هم د زياتو رنځونو دوا ده که تر آمين پورې

کوم چه د هر مسلمان لمونځ کوونکي زده ده هغه په اوړده ساه چې

له يوې دقيقې څخه تر دوو دقيقو پورې وخت ونيسي وويل شي

زياته گټه لري او هغه کوم سوچ چه دده د کړاوو سبب گرځي هغه

له مينځه وړي مطلب دا نه چې ټوله الحمد لله تر آمين پورې په

يوه ساه وويل شی مطلب دا دئ چې الحمد لله په څو ساگانو او

اوږد وويل شي چې ټول آيتونه را جمعه شي له يوې دقيقې نه تر

دوو دقيقو پورې وخت ونيسی او دغه د الحمد لله ويل تر آمين

پورې يو ځل دوه ځل يا درې ځل نه بلکه څو څو ورځې او تر هغه

حده به دغې سلسلې ته دام ورکوي تر څو ټول سوچونه او



# دقلبی او عصبی بیماریو علاج

لیکوال

الشیخ عبدالرحمان بن ناصر الصیعدی

ژباړونکی

ملا محمد اسحق نظامیئ

عنوان چې « د قلبي او عصبي بيماريو علاج » پنامه اړولی دا

هم د خير او د لوستونكو د راجلبيدو په نيت كړيدئ نور دې خدای

ټولو ته معافي وكړي . آمين

والسلام عليكم و رحمة الله و بركاته

**ورور مو ملا محمد اسحٰق « نظامي »**

وسوسې يې ختمې شي او چه کله کومه وسوسه او سوچ ورته پيدا
کيږي او دلته په سورهٔ فاتحه په هغه طريقه چه وړاندې ذکر شوه
په تکرار تکرار وويل شي انشاء الله چې سوچ به يې ورک شي چې
دا تجربه شوې طريقه ده دا وه هغه طريقه چې ماته عملي ثابته
شويده نور دې درانه لوستونکي د کتاب مصنف له دعا و څخه نه
هيروي . او که زه يې هم پکې شريک کړم نو دا به يې بله پيرزوينه
وي .

او هم که په ترجمه کې سره لدې چې ما له زيات احتياط څخه
کار اخيستى تر څو کوم بې ځايه تصرف پکې ونشي خو بيا هم که
په غير ارادي توګه څه کمى زياتى پکې شوى وي معافي دې راته
وشي او دغه يو تصرف چه د کتاب اصلي نوم چه ترجمه يې بايد
داسې شوى واى چې « د اطمينانى ژوندانه وسايل او هغه ما پدى

# د قلبي او عصبي

# بيماريو علاج

ليکونکئ : الشيخ عبدالرحمن بن ناصر السعدي

ژباړونکئ : ملا محمد اسحٰق «نظامي»



# د کتاب ځانګړتیاوې :

د کتاب نوم: د قلبي او عصبي بیماریو علاج .

لیکوال : الشیخ عبدالرحمن بن نصار السعدي .

ژباړونکي : ملا محمد اسحاق « نظامي » .

شمیر :

کال : ۱۳۷۸ هـ ش . ۱٤۲۰ هـ ق .

د کمپیوټر سمبالوونکۍ : احمد ضیأ « شریفي » .

خپرونکی : کابل کتاب پلورنځی د بنګش هوټل تر څنګ خیبر بازار پیښور.

په کابل کې پته : کابل کتاب پلورنځی د شاه دو شمشیره « رح » د زیارت-

تر څنګ .

# فهرست

| شماره | موضوع | مخ |
|---|---|---|